شریعت ورځپانه
SHARIAT DAILY

ننني ګڼه کې:
په تېر ۱۴۰۳ کال کې د اسلامي امارت ډیپلوماتیکې بریاوې
اسراف؛ د نعمتونو ضایع کول او د ټولنې بربادي!
شريعت ورځپانه؛
د حقیقت، ملي ارزښتونو او اسلامي فکر باوري سنګر

ورځنی حدیث
له حضرت عایشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله «ص» به د روژې په وروستي لسیزه کې دومره هڅه(عبادت) کوله چې په نورو ورځو کې مو پرې نه دی لیدلی. [رواه مسلم]

۰۲ / وری / ۱٤۰٤ | ۲۲ / رمضان‌المبارک/ ۱۴۴۶ | ۲۲ / مارچ / ۲۰۲۵ | ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲ | ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰ | x.com/shariatdaily | www.shariatdaily.com



# د بهرنیو چارو وزارت د سفیرانو او نړیوالو سازمانونو د استازو کوربه و

د بهرنیو چارو وزارت په نوښت پرون ماښام ددې وزارت په انګړ کې د بېلابېلو هېوادونو د سفیرانو، د ډیپلوماتیکو ماموریتونو او نړیوالو سازمانونو استازو ته د روژه‌ماتي مېلمستیا چمتو شوې وه. ددې مېلمستیا ته د بهرنیو چارو سرپرست وزیر په خپلو خبرو کې ویلي چې له سیمې او نړۍ سره د افغانستان اړیکې یو نوي پړاو ته داخلې شوي دي. د مولوي متقي په وینا، اسلامي امارت له هېڅ ګاونډي هېواد سره ستونزه نه لري او نه هم د کوم هېواد په زیان دی. مولوي امیرخان متقي رغنیزو برخو کې پرمختګونو ته په اشارې ویلي، چې د ټاپي او قوش تېپې په څېر ستري پروژې ترلاس لاندې دي او همداشان شاوخوا ۳۰۰ د اوبو د مهار چکډېمونه جوړ شوي دي. د کډوالو ستونزو ته په کتو سرپرست وزیر ویلي چې ګاونډي هېوادونه دې کډوال په تدریجي او پتمن ډول له خپل هېواده وباسي او له ډلهییزې وتنې دې لاس واخلي. ښاغلي متقي وړاندې ویلي: د غزې غمیزې د نړۍ د بشري جوړښتونو شتون له پوښتنې سره مخ کړې او د نړۍ د نوي نظم په تړاو یې شکونه پارولي دي. یاده دې شي چې تر دې دمخه هم د بهرنیو چارو وزارت په نوښت ورته مېلمستیاوې او غونډې جوړې شوې دي.

## کابل او واشنګټن د باور او اړیکو جوړولو نوی څپرکی پرانیزي

د بهرنیو چارو سرپرست وزیر مولوي امیر خان متقي د بندیانو په چارو کې د امریکا متحده ایالتونو د ولسمشر له ځانګړي استازي او د افغانستان لپاره د امریکا له پخواني ځانګړي استازي زلمي خلیلزاد او مله پلاوي سره کتلي دي.

د بهرنیو چارو سرپرست وزیر مولوي امیرخان متقي دې پلاوي ته هرکلی ویلی او کابل ته یې راتګ د دوه اړخیزو اړیکو په رغونه کې پرمختګ بللی دی. ښاغلي متقي په خپلو خبرو کې ویلي چې اسلامي امارت د بهرني متوازن سیاست په رڼا کې له ټولو لوریو سره مثبتې اړیکې او ښکېلتیا غواړي. نوموړي وړاندې ویلي چې دواړه هېوادونه باید د شل کلنې جګړې له اغېزو راووځي. د بندیانو په چارو کې د امریکا د ولسمشر ځانګړي استازي ادم بوایلر د افغانستان او امریکا ترمنځ د بندیانو په برخه کې پرمختګ د باورجوړونې پر لور ښه ګام بللی. ښاغلي بوایلر افغانستان کې د نشه یي توکو پر وړاندې د اسلامي امارت

۳مخ

# سرمقاله

## افغانستان او د نړۍ په لوی کلي کې یې نقش او دریځ

د افغانستان جغرافیا د اسیا او نړۍ پر پېښو او تحولونو رغنده نقش لري او دا کار په تېر او اوس کې په ځلونو ټولو ته جوت شوی. د سیمې هېوادونو او نړۍ هم دا حقیقت درک کړی؛ ځکه یې زیاتره وخت د کړکېچ پرځای مفاهمې ته غاړه ایښې او افغانستان یې هم هرکلی کړی.
درې ورځې وړاندې د بهرنیو چارو وزارت د ګڼو هېوادونو د سفیرانو کوربه و او ورمه ورځ هم د امریکا یو پلاوی کابل ته راغلی و. له دې ورهاخوا، تېر کال د اسلامي امارت لپاره په زیاتو برخو کې له لاسته راوړنو ډک و.
په ډیپلوماټیکو برخو کې اسلامي امارت د ګاونډیو هېوادونو، سیمې او نړۍ دروازه ورټکولې او د دوه اړخیزو اړیکو رغونې ته یې لېواله کړي. نړیوالو رسنیو هم دا حقیقت درک کړی. دوی منلې چې د سیمې له هېوادونو سره د کابل اړیکې بېسارې پراخې شوې او دې برخه کې لا هم پرمختګونه پر لار دي. د نړیوال کړکېچ اداري هم منلې چې د ګاونډیو هېوادونو په ګډون د سیمې ګڼ هېوادونه په دې هڅه کې دي چې له اسلامي امارت سره راشه درشه زیاته کړي. دا اداره زیاتوي چې اوسمهال له کابل سره د منځنۍ، ختیځې او سویلي اسیا د هېوادونو تعامل په لوړ کچ کې دی. نړیوالو ډیپلوماټیکو ازادو سازمانونو هم یاده چاره له شک پرته لوی بری بللی. د منځنۍ اسیا سره پراخې اقتصادي، سیاسي او امنیتي اړیکې، د اسیا د لویو اقتصادي هېوادونو په ګډون په ګڼو اسیاسي او اروپایي هېوادونو کې د سفارتونو پرانیسته او فعال ډیپلوماټیک چارچلند او نورې یې غوره نمونې دي. ټاپي یوه نړیواله پروژه ده چې د مادي امتیاز ترڅنګ ګڼ او ژور معنوي امتیازونه لري او په سیمه او نړۍ کې زموږ د سرتاسري امنیت او ګډ کار ثبوت وړاندې کوي.
د یوناما فعالیت او د یوه کال لپاره یې فعالیت غځېدنه یوه بله لاسته راوړنه ده چې د اسلامي امارت له غوښتنو پرته دوی خپل فعالیت ته ادامه ورکوي. حتی اسلامي امارت خو په ځلونو پرې نیوکې کړي چې د افغانستان ځمکني حقیقتونه او لاسته راوړنې نړۍ ته نه ښیي او د افغانستان سمه استازولي نه کوي. تمه شته چې ددې کال په لړ کې یوناما د افغانستان رښتیني وضعیت ته انعکاس ورکړي، د افغانستان د حکومت او ولس غوښتنې تر نړۍ ورسوي. ملګرو ملتونو کې د افغانستان د څوکۍ او د افغانستان د استازي منلو ته شرایط چمتو او اسانچاري وکړي. دې سازمان کې

۳مخ



## د هېواد په سرو سیمو کې نوی ښوونیز کال پیل شو

شریعت: د پوهنې وزارت له لوري د هېواد په سرو سیمو کې د ۱۴۰۴ نوی ښوونیز کال د پنجشنبې په ورځ د یوې غونډې په ترڅ کې په رسمي ډول پیل کړ. په دې مراسمو کې، چې د کابل په اماني عالي لېسه کې جوړ شوي وو د پوهنې وزارت د چارواکو تر څنګ پکې د اسلامي امارت د بېلا بېلو وزارتونو مسئولینو، د ښوونیزو حوزو منسوبینو او یو شمېر زده کوونکو هم ګډون کړی و. په نوموړې غونډه کې د پوهنې وزیر مولوي حبیب‌الله اغا ویلي، چې افغاني ټولنه د دیني علومو ترڅنګ عصري علومو ته هم سخته اړتیا لري، تر څو مو هېواد له نړۍ سره سیالي شي. نوموړي زیاته کړه، چې اسلامي امارت دیني او عصري علومو ته ځانګړې پاملرنه لري او د هېواد ټولو بچیانو ته د دیني او عصري علومو د زده کړو لپاره د اسانتیاوو برابرول زمونږ د لومړنیو موخو څخه دي.
د ښاغلي آغا په وینا، چې عصري علومو ته د اسلامي امارت نه پاملرنه یوازې د افغانستان د دښمنانو زهرجن او دروغجن تبلیغات دي. د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي په دې مراسمو کې هېوادوالو ته د نوي ښوونیز کال مبارکي ویله او د زده کوونکو څخه یې د وخت نه ضایع کولو سپارښتنه وکړه.
نوموړي زده‌کوونکي د هېواد راتلونکي جوړوونکي وبلل او له ښوونکو یې غوښتنه وکړه چې په اسلامي او هېوادنۍ مینه یې وروزي. همداشان د چارو اداري لوی رییس شیخ نورالحق انور ویلي، چې اسلامي امارت د یوه نظام په توګه خپل ټول مسئولیتونه په ښه توګه اداء کړي دي. ښاغلي انور ویل، چې اسلامي امارت په هېواد کې د شریعت پلي کول، دادمن امنیت، زده‌کړه، روغتیا او اقتصادي پیاوړتیا هغه مسئولیتونه یاد کړي، چې د اسلامي امارت په بیا واکمنېدو خلک ترې برخمن شوي دي.

۳مخ



## امارت اسلامی در تلاش وصل افغانستان به شبکه خط آهن منطقه است

نماینده وزارت فواید عامه با سخنرانی در کنفرانس بین‌المللی «صلح و اعتماد» که در کشور ترکمنستان برگزار شده گفت، امارت اسلامی در تلاش وصل افغانستان به شبکه خط‌آهن کشورهای منطقه است. محمد اشرف حق‌شناس، سخنگوی وزارت فواید عامه این مطلبه نقل از ملا محمد ادریس، رئیس ولایتی این وزارت در هرات که در کنفرانس یادشده شرکت کرده، بیان کرده است. بربنیاد خبرنامه، آقای ادریس در این کنفرانس با اشاره به ارزش خط‌آهن به‌عنوان زیرساخت بین‌المللی حمل‌ونقل، نقش آن را در شکوفایی اقتصاد، تجارت و ارتباطات بین‌المللی برجسته کرده است.
رئیس فواید عامه ولایت هرات تاکید کرده که وصل افغانستان با شبکه خط‌آهن منطقه‌ای بخصوص کشورهای همسایه از اولویت‌های امارت اسلامی است.
در بخشی از خبرنامه آمده است: در این کنفرانس روی تقویت اقتصادی منطقه، گسترش شبکه خط آهن، انرژی برق، انتقال گاز و ثبات اقتصادی بحث و تبادل نظر صورت گرفته است. گفتنی است که کنفرانس بین‌المللی «صلح

ص۳

## انتقال زندانیان افغان از ایران به افغانستان؛ تهران ۲۱۱ زندانی را در نیمروز تحویل داد

مقام‌های محلی در ولایت نیمروز از تحویل نخستین دسته از زندانیان افغان از ایران به افغانستان به مقام‌های محلی در این ولایت خبر می‌دهند.
بربنیاد خبرنامه، ۲۱۱ زندانی افغان که به اتهام ارتکاب جرایم مختلف در ایران زندانی بودند، طی مراسمی در گذرگاه مرزی پل‌ابریشم در ولایت نیمروز در حضور داشت مولوی محمد یوسف مستری، رئیس عمومی امور زندان‌ها به مقامات امارت اسلامی تحویل داده شده‌اند.
آقای مستری در این مراسم گفته که پس از مذاکرات با مقام‌های ایران ۴۸۴ زندانی افغان قرار است از این کشور به افغانستان منتقل و به ولایت‌های‌شان مربوطه‌ای‌شان انتقال داده شوند.
او تاکید کرده که در گام نخست ۲۱۱ زندانی تحویل و زندانیان باقی‌مانده بعدتر تحویل داده خواهند شد.
گفتنی‌است که از چندی به این‌سو روند مذاکرات میان مقام‌های عدلی و قضای امارت اسلامی و دولت ایران برای انتقال زندانیان افغان از زندان‌های این کشور به افغانستان جریان داشته است.

## افغانستان ته قاچاقېدونکې وسلې نیول شوې



د پکتیکا امنیه قومندانۍ ویلي چې امنیتي ځواکونو ددې ولایت په تروې ولسوالۍ کې له پاکستانه راقاچاقېدونکې وسلې او مهمات نیولي دي. په دې وسلو او مهماتو کې ۱۶ کلاشینکوفونه، پینځه ایم فور ټوپکې او ۱۶ تمانچې ترلاسه شوي دي. امنیتي ځواکونو دوه موټرسایکلونه هم نیولي چې دا وسلې پرې بار وې. ویل کیږي چې ددې وسلو قاچاقوونکي د ډېرورند فرضي کرښې هغې غاړې ته په تېښته بریالي شوي دي. یاده دې شي چې د هېواد امنیتي ځواکونو او سرحدي ځواکونو وخت پر وخت له هېواده د قاچاقېدونکو او د ناقانونه توکو د واردېدو مخنیوی کړی دی.



## تخنیکي او مسلکي پرسونل شل انټرنېشنل موټر بیا رغولي

د ۲۱۵ عزم قول اردو مطبوعاتي دفتر ویلي، چې ددې قول اردو د تخنیکي او مسلکي پرسونل له لوري ۲۰ انټرنېشل موټر بیا رغېدلي او ګټې اخیستو ته سپارل شوي دي. د ۲۱۵ عزم قول اردو د حمایه کنډک د ورکشاپ مسوول ویلي چې تخنیکي او مسلکي پرسونل یې شپه او ورځ هڅه کوي؛ تر څو هغه وسایط چې بیاځلې د ګټې اخیستو وړ وي، ورغوي او ګټې اخیستو ته یې وسپاري. دې قول اردو ویلي چې تر دې دمخه یې هم سلګونه پوځي وسایط رغولي دي. یاده دې شي چې د اسلامي امارت په راتګ سره د تخنیکي او مسلکي انجنیرانو له لوري زرګونه پوځي او نور وسایط د بیاځلې ګټې اخیستو وړ ګرځېدلي دي.

## شريعت ورځپاڼه؛
# د حقيقت، ملي ارزښتونو او اسلامي فکر باوري سنګر

محمد قاسم عزام

شريعت ورځپاڼه د افغانستان له معتبرو، ژمنو او ملي ورځپاڼو څخه ده، چې د خپل نشراتي دريځ له مخې د اسلام، ملي ګټو، اقتصادي پرمختګ او ټولنيزو ارزښتونو ملاتړ ته ژمنه ده. دا ورځپاڼه د خبرونو د خپرولو تر څنګ د فکري، علمي، اقتصادي او ټولنيزو موضوعاتو لپاره يو باوري علمي او تحليلي مرکز هم دی. د دې رسنۍ ځانګړنه دا ده، چې يوازې د خبرونو پر وړاندې کولو بسنه نه کوي، بلکې د هغو تر شا د حقايقو ژور تحليل، د حالاتو علمي څېړنه او د ټولنې د اصلاح لپاره لازمي لارښوونې هم وړاندې کوي.

په رسنيز ډګر کې د شريعت ورځپاڼې يو له سترو امتيازونو څخه دا دی، چې يوازې د ورځني خبرونو د خپرولو محدود رسالت نه لري، بلکې د ټولنې د فکري او اخلاقي رغونې لپاره ځانګړې هلې ځلې کوي. دا ورځپاڼه نه يوازې دا چې د پېښو راپورونه وړاندې کوي، بلکې د هغو تر شا د پټ حقيقت، تاريخي شاليد، ديني اصولو او ټولنيزو اغېزو ته هم ژوره کتنه کوي. د دې مطلب دا دی، چې شريعت ورځپاڼه د ولس لپاره يوه فکري مدرسه ده، چې لوستونکي يې يوازې د حالاتو له بهير سره نه اشنا کوي، بلکې د دوی د ذهنيت بنه هم د اسلام، ملي ارزښتونو او حقيقت ته د ژمنتيا له مخې رغوي. شريعت ورځپاڼه د علمي مقالو، ديني لارښوونو، ټولنيزې اصلاح، فرهنګي رغونې او اقتصادي پوهاوي له لارې د ملت د سوکالۍ لپاره خدمت کوي. دا ورځپاڼه نه يوازې خالص خبري رسالت لري، بلکې د اسلامي فکر د خپرولو، د ټولنې د اخلاقي اصلاح، د تعليمي سيستم د پياوړتيا، د اقتصاد د پرمختګ او د فرهنګي بيدارۍ لپاره هم کار کوي. د دې ورځپاڼې د مقالو ځانګړنه دا ده، چې د علمي استدلال، ديني لارښوونو، د عصري ستونزو حل او د ټولنيزو ناخوالو د درملنې لپاره عملي لارې چارې وړاندې کوي. لوستونکي يې يوازې د ورځنيو خبرونو سره نه پاتې کېږي، بلکې د فکري، اقتصادي او ديني پرمختګ لپاره لازم معلومات تر لاسه کوي. زموږ ټولنه د فکري جګړو، ناسم تبليغ، اقتصادي ستونزو او فرهنګي يرغلونو له خطر سره مخ ده، ځکه نن‌ۍ د رسنيو له لارې د فکري جګړو په يوه نوي ډګر بدله شوې ده. هره ورځ د ملتونو عقيدې، افکار، ارزښتونه او دودونه د رسنيو له لارې تر بريد لاندې دي. د بېلا بېلو افکارو، فکري الحاد، سياسي تبليغاتو او غلطو تعبيرونو له امله، ډېری خلک يا له خپلو اسلامي اصولو سره نابلده کېږي، يا د حقيقت د درک توان له لاسه ورکوي. په همدې حال کې شريعت ورځپاڼه په دې ډګر کې د يو باوري مشعل په توګه د ولس ذهنونه روښانه کوي. دا ورځپاڼه د عامه شعور لوړولو ته ژمنه ده، د ناسم تبليغ پر ضد علمي دلايل وړاندې کوي، د افکارو دفاع کوي او د حقيقي اسلامي پوهاوي لپاره کره معلومات وړاندې کوي. اسلامي شعور لوړول د شريعت ورځپاڼې بله مهمه ځانګړنه ده. دا ورځپاڼه يوازې اسلامي ارزښتونه نه تکراروي، بلکې د هغو فلسفه، تطبيق او عملي اړخونه هم تشريح کوي. لوستونکي ته يوازې حکم نه ورکوي، بلکې د عقل، استدلال، تاريخ او معاصر حالاتو په رڼا کې اسلامي اصول داسې بيانوي، چې يو عام لوستونکی هم د هغې ژور فهم ته ورسېږي. د حقايقو درک عامول او د ملت اقتصادي شعور ته نوی روح ورکول د شريعت ورځپاڼې بله مهمه موخه ده. اقتصاد يوازې مالي چارې نه دي، بلکې د ملت بقا، ثبات او پرمختګ ورسره تړلی دی. شريعت ورځپاڼه د اسلامي اقتصادي اصولو، عادلانه توزيع، د حرامو او حلالو اقتصادي چارو، د پانګونې، توليد او مصرف له اصولو سره خلک اشنا کوي. دا ورځپاڼه د دې هڅه کوي، چې د ملت اقتصادي تفکر ته اسلامي روح ورکړي، د فقر، احتکار، اقتصادي استثمار او بې‌عدالتيو پر ضد د اسلامي اصولو پر بنسټ حللارې وړاندې کړي. په ټولنيز ډول، شريعت ورځپاڼه يوازې د يوې عادي ورځپاڼې رول نه لري، بلکې د يوې فکري، ديني، اقتصادي او فرهنګي روزنځای حيثيت لري، چې د ملت د ذهنيت، عقيدې، اخلاقو، اقتصادي پرمختګ او ټولنيزې اصلاح لپاره نه ستړې کېدونکې هڅې کوي.

د رسنيو اصلي موخه دا وي، چې ولس ته خبرونه ورسوي، خو شريعت ورځپاڼه يوازې د خبرونو رسولو پورې نه ده محدوده. دا ورځپاڼه د اسلامي ارزښتونو د ترويج، د ملي يووالي د ټينګېدو او د افغاني هويت د ساتلو لپاره يو مهم نشراتي سنګر دی. په داسې حال کې چې ځينې رسنۍ يوازې د پېښو ظاهري اړخ ته توجه کوي، شريعت ورځپاڼه د هغو ديني، اخلاقي او ملي ابعاد هم روښانه کوي. دا ورځپاڼه د پرديو فرهنګي يرغلونو، بې بنسټه تبليغاتو او د افکارو مغشوشولو پر وړاندې يوه فکري دفاع ده. که فکر وکړو د معاصرې نړۍ رسنۍ د معلوماتو د خپرولو سربېره د فکري جګړو مهمې جبهې ګرځېدلې دي. مغرض تبليغات او کلتوري يرغلونو هڅه کوي، چې ملتونه له خپلو اساسي اصولو لرې کړي. شريعت ورځپاڼه د دې هڅو پر وړاندې د حقيقت غږ پورته کوي، ولس ته کره معلومات وړاندې کوي او د هغوی فکري وضاحت ته کار کوي.دا ورځپاڼه د هغو کسانو لپاره يوه د خدمت يو غوره ميدان دی، چې غواړي د خپل دين، ملي هويت او افغاني ارزښتونو د ساتنې لپاره رسنيز خدمت وکړي. د دې نشرات د لوستونکو د فکري ودې سبب کېږي او د حق غږ ته قوت هم ورکوي او هغو ته چې د اسلامي او ملي ارزښتونو د دفاع هوډ لري، فکري ملاتړ ګرځي.په نننۍ عصر کې چې ډېری رسنۍ د نړيوالو قدرتونو تر نفوذ لاندې دي او ځينې د ځانګړو سياسي موخو لپاره کار کوي، شريعت ورځپاڼه د خپل حقاني دريځ له مخې د ملت اعتماد ګټلی دی. دا ورځپاڼه د هر ډول تبليغاتي دروغو، د واقعيتونو د تحريف او د رسنيزو لاسوهنو پر ضد کلک دريځ لري. د دې ورځپاڼې ځانګړنه دا ده، چې د اسلامي اصولو پر بنسټ د ټولنې اصلاح ته ژمنه ده. دا ورځپاڼه د حق بيان ته ژمنه ده، د ولس د خير لپاره کار کوي او ټولنه له تيارو څخه روښنايي ته راباسي.شريعت ورځپاڼه د ولس د باور وړ او معتمده رسنۍ ده، چې د ټولنې په هره برخه کې يې د خلکو ملاتړ او مينه ترلاسه کړې ده. د دې ورځپاڼې ژورناليستان او ليکوالان يوازې د رسنيز مسئوليت احساس تر څنګ د ملي، ديني، فرهنګي او اقتصادي رسالت احساس هم لري. دوی د خپل قلم له لارې د حق پيغام خپروي، د علم او معرفت شعاعوې خوروي او د ملت د سوکالۍ لپاره بې دريغه زحمت باسي.

د شريعت ورځپاڼې دا ستر خدمتونه ډېرې د ستاينې او هڅونې وړ دي، ځکه چې د يوه ملت د فکري، علمي او اقتصادي ودې لپاره رسنۍ مهم رول لري. دا ورځپاڼه د اسلامي امت د بيدارۍ، د ملت د اصلاح، د اقتصادي ودې او د ټولنيز ثبات لپاره يوه ارزښتناکه وسيله ده. الله دې د دې نشراتي خدمتونو برکت زيات کړي او دا ورځپاڼه دې هميش د حق، عدل او اصلاح يو تلپاتې اواز وي.

# په تېر ۱۴۰۳ کال کې د اسلامي امارت ډيپلوماټيکې برياوې

خليل تسل



وخت فرصت دی، له فرصتونو سالمه استفاده کول هم د وګړو فردي او هم د مسئولو حکومتونو ملي مسئوليت وي، څو د خپلو خلکو، خاورې، ارزښتونو او نسلونو لپاره ملي ګټې، دريځ او هويت خوندي وساتي. افغانستان د تاريخ په اوږدو کې هر وخت له ننګونو او ستونزو سره مخامخ شوی، په سيمه ييزه او نړيواله کچه ورته خنډونه جوړ شوي، بې ځايه کورنۍ دندې ورکړل شوې او يا يې هم په نړيوالو مسايلو کې له نقش نه له يوې مخې سترګې پټې شوې دي، حال دا چې د اسيا د مرکز په توګه د پېښو او بدلونونو يو اصلي محور دی، له افغانستان سره د دا ډول چلن يو لامل هم په تېر کې د خپلواکې بهرنۍ پاليسۍ او ملي ژبې نشتوالی يا هم داسې حکومتونو شتون و، چې له خپل ولس کې يې ژورې ريښې نه درلودې او بې ځايه نړيوال کېدنه او سيالي يې له ټولو مخکنۍ هدف و.

تېر ۱۴۰۳ کال چې په افغانستان کې د اسلامي امارت د حاکميت درېيم کال و، د دې ټولو ننګونو خلاف يو ښه کال و او افغانستان د خپلې فعالې او اغېزناکې بهرنۍ ډيپلوماسۍ پر مټ وتوانېده چې د نړيوال رسميت پر نشتوالي سربېره هم له ډېرو په رسميت پېژندل شويو ګاونډيانو هم خپل حيثيت لوړ وساتي او ګټې ډيپلوماټيکې برياوې ولري. په نړيوال سياست کې فعاله بهرنۍ ډيپلوماسي نن سبا يوه داسې ژبه ګڼل کېږي چې د هېوادونو ګټې، د خپلو ملتونو غوښتنې او اړتياوې ورباندې رسول کېږي او اسلامي امارت هم د همدې اصل په پام کې نيولو سره د يوه غير متزلزل سياست او با دريځه نړيوال سيتج په درلودلو سره تر ډېره پورې نړۍ او نړيوال سازمانونه قانع کړلی شول چې اوس په افغانستان کې د نړيوالو تپل شوې جګړه نشته او د نن سوله ييز افغانستان له نړۍ سره هر ډول سوله ييز تعامل او خبرو ته په هر ډول شرايطو چمتو دی، خو خپلې سرې کرښې او موخې په هېڅ صورت هم د نورو تر ګټو او بې ځايه غوښتنو نه شي قرباني کولی، چې په همدې سبب يې نړيوال باور او حيثيت خپل کړ او دا ژبه يې ګڼو هېوادونو او حتی ملګرو ملتونو هم درک کړې ده او له دغه واقعيت څخه ډېر منکر نړيوال سازمانونه او متعصب حکومتونه هم بالاخره دې حقيقت ته غاړه ږدي.

د همدې مقدمې په رڼا کې يو شمېر هغو برياوو ته اشاره کوو، چې د تېر کال په ډيپلوماټيکې لاسته راوړنو او برياوو کې يې هېرول بې انصافي ده، ځکه که موږ يې يادې هم نه کړو، نړيوال اسناد، د رسنيو ګزارشونه او واقعي سياستوال يې شاهدان دي.

بهرنۍ استازولۍ:

اسلامي امارت د بيا ځلې حاکميت له پيله تر نن ورځې پورې تل له بهرنيانو يا په بله اصطلاح له نړيوالې ټولنې سره د خپلو ملي ګټو د خونديتوب په رڼا کې د هر ډول سياسي تعامل د کولو لپاره چمتووالی ښودلی او په قطر کې يې د سياسي دفتر دروازه د ټولو پر مخ پرانيستې ده چې په برکت يې د بهرنيو چارو وزارت د معلوماتو له مخې اوسمهال د نړۍ په ۴۰ هېوادونو کې، چې اروپايي هېوادونه هم په کې شامل دي، فعالې استازولۍ لري، په دغه هېوادونو کې د اسيا ستر اقتصادي او سياسي قدرتونه چين، روسيه او هند هم شامل دي، چې د اسلامي امارت ملي او بې طرفه دريځ يې درک کړی او دې نظام ته د ملت د استازي نظام په سترګه ګوري.

ګڼ هېوادونه ددې حقيقت له درک وروسته خپله حاضر شوي چې هلته د افغانستان استازولۍ د بهرنيو چارو وزارت ته په خپله خوښه وسپاري. په يادو ټولو استازوليو کې افغان ديپلوماټان فعال حضور لري، له کوربه هېواد سره په بېلابېلو مناسبتونو کې د خپل ملت د استازو په توګه را څرګندېږي چې دا واقعاً يو پر ځای ګام دی او هغو مخالف فکرو ته ملا ماتونکی ځواب دی چې خولې يې له هغه او دغه هېواده د اسلامي امارت د مخالفت په نارو وچې شوې دي.

کابل کې فعال سفارتونه:

په بهرنيو هېوادونو کې د افغانستان د استازوليو او د قطر دفتر د پر له پسې هڅو په پايله کې د نړۍ لوی او کوچني شل هېوادونه، حتی داسې هېوادونه هم چې پخوا يې افغانستان کې هېڅ استازولي نه درلوده، دې ته لېوال شوي چې له افغان ولس سره د سالمو او ډيپلوماټيکو د ټينګښت لپاره کابل کې يو ځل بيا خپلې استازولۍ پرانېزي او سفيران يې د رسميت بر نشتوالي سربېره هم فعال حضور ولري، په بېلابېلو برخو کې خپلو مرستو او همکاريو ته دوام ورکړي، چې دا په رښتيا هم يوه ستره بريا ده او په تېر کال کې يې له دولتي ادارو سره د ليدنو کتنو ګزارشونه او تصويرونه په رسمي او نا رسمي خبري شبکو کې موجود دي.

له ګاونډيانو سره داړيکو توازن:

افغانستان په تېر کې ډېر ځله له ګاونډيو هېوادونو سره له لانجو او ستونزو کې را ګير و، دا ستونزې تر ډېره پورې له دوی سره په اړيکو کې د توازن د نشتوالي،

نا خپلواک بهرني سياست او بهرنيو مداخلو په سبب وې، يوه ګاونډي ته ډېر نږدېوالي او له بل څخه ځان را ټولولو به دغه ډيپلوماټيک توازن او اړيکې دومره خرابې کړې چې ورسره به سوداګري او نورې چارې هم اغېزمنې شوې، هلته په مېشتو افغان کډوالو به يې هم ژوند تنګ کړ، داسې هم کېدل چې ګاونډيو هېوادونو له له افغان کډوالو د زور د يوې وسيلې په توګه ګټه اخيستله، چې له نېکه مرغه په دې برخه کې اسلامي امارت د اقتصاد محوره پاليسي له مخې توازن برقرار کړل او له دې ډلې ايران او پاکستان سره د سرحدي پوځي لانجو پر رامنځته کېدو سربېره هم خپله ډيپلوماسي فعاله وساتله او د اړيکو ثبات يې خوندي کړ.

د نړيوالو پېښو او مسايلو پر وړاندې معقول غبرګون:

له بده مرغه چې يو شمېر نړيوال سازمانونه او ادارې، ځينې حکومتونه داسې وو چې په تېر کال کې يې پر افغانستان او اسلامي امارت د پخوا په څېر نيوکې کولې، غير متوازنې او ناسمې اعلاميې يې خپرولې، د ځينو موخه هم دا وه چې د امارت بهرنۍ پاليسي په احساساتو او بې ځايه غبرګونونو کې را ګډه او بيا د رسنيو د بحثونو موضوع وګرځوي، خو له نېکه مرغه چې اسلامي امارت په دې برخه کې د ټولو نړيوالو مسايلو پر وړاندې نه يوازې غلی پاتې نه شو، بلکې په هره موقع او مناسبت يې معقول غبرګون وښود، د هاګ نړيوالې محکمې د ناسمو فيصلو، د غزې پر مظلوم ولس د صهيونيستي رژيم د ظلم او همداسې د افغانستان په کورنيو چارو کې د هر ډول لويې او کوچنۍ مداخلې پر وړاندې غبرګون پر موقع او مناسبت و چې تر ډېره يې د هغوی موخې دفعه کړې دي.

بهرني سفرونه

د افغانستان اسلامي امارت د بهرنيو چارو وزير وروستی سفر د يوه پلاوي په مشرۍ عمان هېواد ته و، هغه هېواد چې د انرژۍ او پانګونې په برخه کې د ظرفيت لرونکی هېر شوی هېواد دی، له دې وړاندې هم ګاونډيو او د سيمې هېوادونو ته د بهرنيو چارو په وزير سربېره د کابينې ګڼ نور وزيران او د ادارو مسئولين په بهرنيو کنفرانسونو او غونډو کې د سفر لپاره بلل شوي او هلته يې خپل دريځ بې سانسوره او په ډاګه بيان کړی دی، برعکس بيا کابل ته هم د لومړي وزير په کچه بيرونيو مشرانو او بېلابېلو پلاوو سفرونه درلودل او تر ليدنو کتنو وروسته يې پر سرپرست حکومت او ملي ثبات باور لا پياوړی شوی او خپلو هېوادونو ته له مثبتو پيغامونو سره ستانه شوي دي.

يوناما او د کاري ماموريت تمديد:

يوناما يا په افغانستان کې د ملګرو ملتونو سياسي استازولي همېشه د مېلادي کال په پای کې له دې ننګونې او انتخاب سره مخ وي چې ايا افغانستان کې خپل ماموريت وغځوي او که لمن را ټوله کړي، د جمهوريت پر مهال به د بهرنيو چارو وزارت د زاريو تر کچې پورې پر کور د ننه او بهر غوښتنې کولې چې دا اداره بايد کابل کې موجوده وي او په نشتون کې يې نظام له خطر سره مخ کېږي، حتی ملګرو ملتونو او امنيت شورا ته د دې ادارې د منفي او ناسمو ګزارشونو پر وړاندې يې هم د مصلحت له مخې غبرګون نه شو ښودلی، خو سږ کال چې بيا دغه دفتر د خپل فعاليت د بندېدو يو مياشتنۍ چنې وهلې، د اسلامي امارت په بهرني دريځ کې هېڅ د زارۍ او تم کېدو کومه غوښتنه نه وه، بلکې برعکس يې وربانديې سختې نيوکې کولې چې ولې پر نړيواله که کچه د اسلامي امارت لاسته راوړنو ته انعکاس نه ورکوي او په خپلو راپورونو کې له انصاف نه کار نه اخلي، دا بيا د خوښۍ خبره ده چې په خپله خوښه يې يو کال بيا د خپل فعاليت موده وغځوله.

د تبليغاتو او پروپاګنډو ځواب:

له بده مرغه چې يو شمېر هېوادونو او مغرضيو کړيو له هېواده بهر د اسلامي امارت سياسي مخالفينو او کمپ مېشتو ته بيا بيا د تېر کال په اوږدو کې د سيمينار، ډيالوګ، فورم يا بل مناسبت تر نامه لاندې زمينه مساعدوله چې سره راټول شي او د ناليدلي افغانستان يو منفي تصوير ور وړاندې کړي، خپل ځان پر حقه وبولي او بيا له همدې دريځه د اسلامي امارت او افغان ولس پر وړاندې له حقيقت لرې او دروغجن تبليغات او پروپاګنډه وکړي، چې ډېر يې خپله نړيوالو او حتی کوربه هېوادونو ته هم د منلو نه وو، خو د اسلامي امارت د بهرنيو چارو وزارت يې د خبرپاڼو او کنفرانسونو له لارې ځواب ويلی او بېرته يې د هغوی شر په حقيقت څرګندولو دفعه کړی دی. د دې تبليغاتو يوه برخه د هغو رسنيو له لارې مطرح کېده چې له افغانستانه تښتېدلو چارواکو او د هغوی اړوندو سازمانونو او استخباراتي کړيو له لوري تمويل کېږي.

داعشي خوارج او ورسره مبارزه

داعش نن سبا يوه نړيواله ترهګريزه کشاله ده، چې بريد او سرحد نه لري، د نړۍ په بېلابېلو هېوادونو کې يې د امنيت د اخلال او ولس وژنې په برخه کې ځان ښکاره کړی، ځکه خو ورسره مبارزه هم يوه نړيواله موضوع او امنيتي مسئوليت ګڼل کېږي، خو له بده مرغه چې په دې برخه کې د اسلامي امارت پرېکنده مبارزې او ددغه ډلې له منځه وړلو ته نړۍ کوم شاباسۍ نه دی ورکړی، نه يې کومه همکاري کړې ده، ځکه چې په افغانستان کې د اکثره وژل شويو داعشي خوارجو څخه تر لاسه شوي اسناد ثابتوي چې هغوی د ګاونډيو او سيمې له هېوادونو څخه را لېږل شوي او هغه ګډ دښمن چې ټوله نړۍ ګواښي، پر وړاندې يې يوازې اسلامي امارت پرېکنده ګام اخيستی او نه يوازې افغانستان، بلکې تر ډېره يې نړۍ هم له شر څخه بېغمه کړې، خو په بدل کې يې بايد نړۍ هم خپل مسئوليت تر سره کړي او د ګډ دښمن په سترګه ورته وګوري.

پايله

په پايله کې ويلی شو چې له نړۍ سره اوسنی سياسي تعامل په حقيقت کې د رسميت پېژندنې بله بڼه ده، کله چې د سفيرانو او وزيرانو په کچه د دوو هېوادونو تر منځ راشه درشه موجوده وي، يو د بل وګړو ته قونسلي خدمات او نورې چارې په وخت تر سره شي، نو يوازې د يوه رسمي اعلان پر سر يې بحث څه درد دوا کولی شي يا څه اړين دی؟ له نېکه مرغه چې د تېر يوه کال ديپلوماټيکې لاسته راوړنې او برياوې د يوې لسيزې کار غواړي، خو ثابت دريځ، خپلو اسلامي او ملي ارزښتونو ته سخته پابندي او نړيوال توازن ته پام کول ددې سبب شوی ،چې اسلامي امارت د خپلې اقتصاد محوره پاليسۍ او د دوحې تړون مادو ته د بشپړې ژمنتيا په رعايت سره ورو ورو نړۍ په دې قانع کړي چې افغانستان نور يو سوله ييز او خپلواک هېواد دی، د هر ډول سيالۍ جوګه دی او خاوره يې هېڅ ترهګر ته پناه ځای نه شي کېدلی.

# اسراف؛ د نعمتونو ضایع کول او د ټولنې بربادي!

محمد مجاهد

په روا کارونو کې له خپل ټاکلي حد څخه تېری کول او په نامناسب ځای کې لګښتونه کول، اسراف بلل کېږي. اسراف په یقیني توګه حرام عمل دی، د زړه یوه ناروغي ده او ناوړه کار دی.
الله تعالی فرمايي: خوراک کوئ، څښاک کوئ، خو اسراف مه کوئ؛ ځکه الله تعالی اسراف کوونکي نه خوښوي.[الأعراف ۳۱]
همداراز فرمايي: بې ځایه لګښتونه مه کوه، ځکه بې ځایه لګښت کوونکي د شیطان ورونه دي او شیطان د خپل رب ناشکره ده.[ الإسراء ۲۶_۲۷]
بل ځای فرمايي: او ناپوهانو ته د هغوی مالونه مه ور کوئ(ځکه هغوی یې په قدر نه پوهېږي) [النساء ۵]
رسول الله ﷺ فرمايي: الله تعالی ستاسو لپاره د مال ضایع کول نه خوښوي.[صحیح البخاري]
رسول الله ﷺ فرمايي: د قیامت په ورځ به د بنده قدمونه تر هغه له خپله ځایه ونه ښوري، چې دا پوښتنې تري نه وي شوې: عمر دې په څه کې تېر کړ، په علم دې څومره عمل وکړ، مال دې له کومې لارې ترلاسه کړ او په څه دې ولګاوه؟ بدن دې په څه کې زوړ کړ؟ [سنن الترمذي]
رسول الله ﷺ یوه ورځ په سعد رض تېریده په داسې حال کې چې هغه اودس کول، رسول الله ﷺ وفرمایل: دا څنګه اسراف ای سعده؟ سعد رض وویل: آیا په اوداسه کې هم اسراف شته؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! که څه هم په روانه ویاله ناست یې![أخرجه احمد]
اسراف ولې حرام دی؟
_ مال هغه نعمت دی چې په سبب یې آخرت جوړیږي، ژوند برابریږي، حج ادا کیږي، جهاد کیږي، روغتیا ژغورل کیږي، خوراک، څښاک، پوښاک او هستوګنځی پیدا کیږي، د سوال او اړتیا له ذلت ځان ساتل کیږي، خپلوي او دوستي پالل کیږي، له اړمنو سره مرسته کیږي، مسجدونه، مدرسې، لارې، پلونه او ویالې پرې جوړیږي، نو اسراف له دې کبله حرام شو، چې مال ضایع کیږي او په مال ستر ستر د خیر کارونه کیږي.
_ ټولنه له هغه ناروغیو څخه ژغورل چې له ډیرو خوړلو او څښلو پیدا کیږي.
_ د مال مدیریت او په مناسب ځای لګښت، تر څو د اسراف له امله ټولنه له اړتیا او بې وزلۍ سره مخ نه شي.
_ ټولنه له هغه فتنو، دښمنیو او اختلافاتو څخه ژغورل چې د اسراف له امله را پورته کېږي، ځکه ډیر وخت د بې ځایه لګښتونو په سر په کورنۍ کې خفګان رامنځته شي.
د اسراف ډولونه
۱_ په مال کې اسراف
لکه: له اړتیا پرته شیان را نیول، خوراکي توکي نه خوندي کول تردې چې یا په لمر، باران او هوا خراب شي، یا په داسې ځای کې کېښودل شي چې موږکان، چینجي او نور حشرات او حیوانات یې وخوري.
همداراز له خوراک وروسته پاتې شوي خواړه غورځول، په مړښت سربېره خوراک کول، په ورځ کې تر دوه درې ځله عادي خوراک زیات خوراک کول، هر هغه څه خوړل چې اشتها ورته وشي، په دسترخوان تر خوړونکو زیاتې ډوډۍ ښوودل؛ دا هر څه په اسراف کې شمیرل کیږي.
۲_ په کورونو کې اسراف
لکه: د ودانیو په جوړښت او ښایست اضافي لګښتونه کول، هغه وسایل کارول چې د اړتیا نه، بلکې د ښکلا لپاره وي، برښنا مصرفول او داسې نور.
۳_ په اوبو کې اسراف
لکه: په اودس، غسل او د شیانو په وینځلو کې ډېرې اوبه تویول، له هغه وروسته چې د آسمان یا چینو په اوبو ځمکې خړوبې شي، بیا د ښاه او برمې په اوبو خړوبول.
٤_ په جامو کې اسراف
لکه: د فخر او لویۍ لپاره لوړ بیه لباس کارول، له اړتیا پرته کالي جوړل، له یو_دوه ځله وروسته استعمال شوي کالي غورځول.
۵_ په سپرلیو کې اسراف
لکه: له اړتیا پرته موټر، موټرسایکل او د سپرلۍ نور وسایل کارول، د یوه پر ځای دوه رانیول، د زاړه پر ځای نوی را نیول او زوړ نه کارول.
٦_ په ودونو او خوښیو کې اسراف
لکه: په ډوډۍ ورکولو کې بې ځایه مصارف کول، د شهرت او ځان ښوودنې لپاره ډول ډول خواړه برابرول، واده په هوټل کې جوړول، یو بل ته رواجي او قیمتي تحفې ورکول، د خوښۍ پر مهال ډزې/ټکان کول او هغه مرمۍ ضایعه کول چې د دښمن پر وړاندې کاریږي.
۷_ یه خبرو کې اسراف
لکه: عبث خبرې کول، فضول مجلسونه کول او تر دې اندازې غږیدل چې زړه د الله تعالی له ذکر څخه غافل شي.
۸_د اندامونو اسراف
لکه: په سترګو پردیو ښځو، هلکانو، حرامو تصویرونو، فلمونو، سریالونو او ډرامو ته کتل، په غوږونو موسیقي، سندرې، فاحشې خبرې او کیسې اوریدل.
۹_ په وخت کې اسراف
لکه: په لوبو، لهو لعب، ګیمونو او بې ګټې شیانو وخت ضایع کول، د ټلیفون او تلویزیون مخې ته په ساعتونو_ساعتونو کېناستل او په بې ارزښته کارونو ځان بوختول.
۱۰_ په سوداګري کې اسراف
لکه: شیان تر خپل قیمت پورته اخیستل، د داسې کسانو په لاس سوداګري کول چې هغه په سوداګري کې پوهه نه لري او تاوان کوي.
د اسراف علاج
_په مالي لګښت کې احتیاط کول او مالي مدیریت ته پاملرنه کول.
_د اسراف په زیانونو، ناوړه عواقبو او آفتونو کې فکر کول.
_ د اړمنو کسانو حال پوښتل.
_ له ریا او شهرت ځان ساتل.
_ سستي او کهالي نه کول.
سرچیني: [طریقة المحمدیة ص ۲۹۲]
[الإسراف في المجتمع أنواع، أسبابه، وطرق الوقاية منه]
په (شبكة الألوكة) ویب سائټ کې نشر شوې مقاله

# د مجلس ادبونه

احسان الله حقپال

لومړی ادب: له نا مناسبو خبرو (ټوکو ټکالو) څخه ډډه کول:
کله چې څوک یو مجلس ته ولاړ شي، باید د مجلس د ادابو خیال وساتي، یو له هغو آدابو څخه داده چې سړی باید په مجلس کې له بې ځایه بحثونو څخه ډډه وکړي؛ ځکه اکثره وخت همدا بې ځایه بحثونه د غټو شخړو لامل شي او همداراز له بې ځایه ټوکو ټکالو څخه باید ډډه وشي، په دې اړه ابو حاتم په خپل کتاب روضة العقلاء کښې لیکي: بې کاره ګپ لګولو سره عزت او آبرو له منځه ځي، دښمني ورسره پیداکېږي، ملګرتیا ورسره ختمېږي او په زړونو کښې کینه پیداکوي، مینه او محبت لمنځه وړي همدا راز امام بخاري رحمه الله په خپل صحیح کې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم حدیث نقل کړی: ژباړه: له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت ده فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې په الله تعالی او ورځ د اخرت ایمان لري نو خپل ګاونډي ته دې تکلیف نه رسوي او څوک چې په الله تعالی او ورځ د اخرت ایمان لري نو د میلمه اکرام دې کوي او څوک چې په الله تعالی او ورځ د اخرت ایمان لري نو دخیر وینا دې کوي یا دې چوپتیا غوره کړي.
دویم ادب: د دوو کسانو په منځ کې بغیر د اجازې نه کیناستل:
د مجلس له آدابو څخه بل ادب دادی چې د دوه کسانو په منځ کې بغیر د اجازې نه کیناستل؛ ځکه دا د اسلام له آدابو څخه خلاف ده چې د دوه کسانو په منځ کې بغیر د هغوی له اجازې څخه کینې په دې اړه رسول الله ﷺ فرمایلي: ژباړه: نه دې کینې (یوکس) په مابین د دوو کسانو مګر د هغوی په اجازې سره. له دې حدیث څخه دا خبره څرګنده شوه چې د دوو کسانو په مابین کې بغیر د اجازې کیناستل د اسلام له ادابو څخه خلاف کار ده.
دریم ادب: دوه کسان په خپل منځ کې پټ مجلس نه کول:
د مجلس له آدابو څخه بل مهم ادب داده چې کله په یو مجلس کې کسان کم وي باید دوه کسان ځانته پټ مجلس شروع نه کړي، دا د اسلام له آدابو څخه خلاف ده، البته که چېرته یو مجلس کې کسان ډېر زیات وي او هر څوک د خپل څنګ ملګري سره مجلس کوي نو بیا څه باک نشته؛ ځکه په کم کسانو کې چې کله دوه تنه ځانته مجلس شروع کړي، د نورو ملګرو په زړه کې شیطان وسوسې پیدا کوي، په دې اړه پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي: ژباړه: له عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت ده، پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې کله درې کسان وي نو دوه کسان دې بغیر له دریم کسه څخه (ځانته) مجلس نه کوي.
څلورم ادب: د مجلس په آخره کې مسنونه دعا ویل:
د مجلس له آدابو څخه اخیري ادب داده، چې کله مجلس پای ته ورسیږي نو په اخیر کې دې مسنونه دعا ووايي کومه چې په احادیثو کې په لاندې ډول راغلې: ژباړه: له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت ده فرمايي: رسول الله ﷺ فرمایلي: چې کله یو څوک په یو مجلس کې کیني او په هغه کې ډېرې (ګډې وډې) خبرې وکړي او مخکې له پاڅېدو څخه دا کلمات ووايي: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، نو په دغه مجلس کې یې چې څه ویلي وي د هغو ټولو ورته بښنه کېږي.
اخذلیکونه:
۱ ــ وګورئ! أبو حاتم، محمد بن حبان بن أحمد بن حبان بن معاذ بن مَعْبدَ، التميمي، الدارمي، البُستي (المتوفى: ٣٥٤هـ)،روضة العقلاء ونزهة الفضلاء، المحقق: محمد محي الدين عبد الحميد، ناشر: دار الكتب العلمية - بيروت، ص:۷۷
۲ ابو عبدالله، صحیح بخاري، ج۸ ص ۱۱. و ابوالحسن, صحیح مسلم, ج ۳ ص ۱۳۵۲.
۳ ابوداود، سنن ابي داود ج ۴ ص ۲۶۲.
۴ ابو الحسن، صحیح مسلم ج ۴ ص ۱۷۱۷.
۵ ــ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما: نوم یې: عبدالله، د پلار نوم یې: عمر، د نیکه نوم یې: خطاب، اسم کنیه یې: ابو عبدالرحمن دی، ابن عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ملګرو له جملې څخه وو، نوموړی د بعثت په ۳ کال پیدا شوی دی، د خپل پلار عمر رضی الله عنه سره یې یو ځای اسلام قبول کړی دی، په ۷۳هـ کې وفات شوی دی.(الاصابة، جـ ۴ صـ ۱۵۵).
۶ ــ أبو عيسى محمد بن عيسى بن سَوْرة بن موسى بن الضحاك، الترمذي، (المتوفى: ۲۷۹هـ) ، سنن الترمذي,محقق: بشار عواد معروف, ناشر: دار الغرب الإسلامي - بيروت، چاپ کال: ۱۹۹۸ م، امام ترمذي رحمه الله فرمایي دا حدیث حسن صحیح او ددې وجې نه غریب ده، ج ۵ ص ۳۷۱.

## امارت اسلامی در تلاش ...

و اعتماد» با اشتراک هیئت‌های از ۱۰۰ کشور جهان به میزبانی شهر عشق‌آباد، پایتخت کشور ترکمنستان برگزار شده است.
در این کنفرانس به نمایندگی از افغانستان هیئتی مشترک از وزارت‌های فواید، معادن و پترولیم و شرکت برشنا، اشتراک کرده است.

## کابل او واشنګټن د باور ...

مبارزه او د امنیت ټینګښت ستایلي دي.
نوموړي وړاندې ویلي: دواړه هېوادونه تاریخي اړیکې لري چې ځینو پړاوونو کې ستونزې هم وې، اوس مهمه دا ده چې راتلونکي ته وګورو.
مولوي امیرخان متقي او د امریکا استازي په داسې حال کې کابل کې ګوري، چې ورم ماښام د بهرنیو چارو وزارت د ګنو هېوادونو د سفیرانو، د ډیپلوماټیکو ماموریتونو او نړیوالو سازمانونو استازو کوربه و.

## افغانستان او د نړۍ په ...

د افغانستان د څوکۍ غصب د ټولو نړیوالو او بشري حقونو خلاف کار دی. له ټولو هېښونکې پراډوکس بیا دا چې د همدې سازمان له لوري د افغانستان د خلکو د نشتون په صورت کې پرېکړې کیږي.
د اسلامي امارت مشرانو په ځلونو ویلي چې د ګاونډیو او سیمو هېوادونو په تړاو د خیر ښېګڼې نیت لري او هېڅ ته اجازه نه ورکوي چې له افغان خاورې دې د نورو هېوادونو ګټې زیانمنې کړي او یا دې هم پرې تېری وکړي. افغان حکومت له نورو هېوادونو هم غوښتي چې د افغانستان په کورنیو چارو کې له لاس وهنې لاس پر سر شي او خپلې دوه اړخیزې اړیکې د ګډ درناوي سیاست له مخې وپالي. اسلامي امارت تل د تفاهم او ډیپلوماسۍ لاره نیولې ده، خو له نورو سره په اړیکو او راشه درشه کې یو ګام هم له شریعت نه شاته‌کېدونکي دي.

## د هېواد په سړو سیمو کې ...

نوموړي زیاته کړې، چې د تېر په پرتله د افغانستان په ښوونیز وضعیت، امنیت، نصاب او نورو برخو کې مثبت بدلونونه راغلي دي.
د پوهنې وزارت د دفتر رییس مولوي شهاب الدین ثاقب وویل، چې د ۱۴۰۴ ښوونیزکال په داسې حال کې پیل کېږي چې له نېکه مرغه تېر ۱۴۰۳ کال د پوهنې وزارت لپاره له زیاتو لاسته راوړنواو بریالیتوبونو ډک کال و. نوموړي زیاته کړه، چې تېر کال په هېواد کې ۴۴ زره مدارسو او ښوونځیو فعالیت درلوده، چې تر ۱۰ میلیونو زیات زده کوونکو پکې زده کړې او تر دوه نیم سوه زرو زیاتو استادانو او ښوونکو پکې تدریس کاوه.
ده وویل، چې په ټولو ولایتونو کې زر کسیزې جهادي مدرسې فعالې وې د هېواد په ۴۲۰ ولسوالیو کې ۵۰ کسیزه مدرسې رامنځته شوې او همداشان په ټول هېواد کې ۵۳ بابه دوه سوه کسیزه لیلیې مدرسې د فعال کېدو په درشل کې دي.
هغه وایي، چې د آزادې سیالي له لارې له ۸ زرو څخه په زیاتو بستونوکې مسلکي ښوونکي او معلمین ګمارل شوي.
همداشان د پوهنې وزارت سږ کال لپاره هم د تعلیمي نظام د کمي او کیفي پرمختیا په موخه ډول ډول پروګرامونه چمتو کړي، چې په تطبیق سره به یې له شک پرته د هېواد په ښوونیز بهیر کې د پام وړ مثبت بدلونونه راشي.
د ازموینو ملي اداري رییس شیخ عبدالباقي حقاني په دې مراسمو کې ویلي، چې د پوهنې وزارت باید هڅه وکړي، تر څو د هېواد د بچیانو ذهنیتونه په اسلامي او ملي روحیه وروزي.
ښاغلي حقاني زیاته کړې، چې زموږ هېواد په تېرو کلونو کې د علم په ډګر کې وروسته پاتې شوی او اوس د پوهنې وزارت مسئولیت لري چې په دې برخه کې خپل مکلفیت په ښه توګه اداء کړي.
هغه وویل، چې د هېواد بچیان باید داسې وروزل شي، چې د نړۍ له هېوادونو سره سیال وي او افغانستان پر ځان بسیا کړي.

**سمیع الله مومند**

Saturday ۲۲/Mar/۲۰۲۵

# SHARIAT

Diretor: Eng. Uzair Baryaly
Editor-in-Chief: Farooq Galjai
Secartary: Khalid Afghan
Graphic Designer: Mahboob Afzali
Established Date: ۱۹۹۰
Season: Second
Volumn: ۷۱۳

### نماینده ازبیکستان در امور افغانستان:

## افغانستان اکنون یک کشور کاملا امن است

عصمت‌الله ایرگاشف، نماینده ویژه ازبیکستان در امور افغانستان می‌گوید، این کشور در حال حاضر از امنیت کامل برخوردار است.

بربنیاد گزارش، نماینده ویژه ازبیکستان در امور افغانستان با ملا محمد یوسف وفا، والی بلخ دیدار و افزوده که در حال حاضر هیچ تهدیدی از آدرس افغانستان متوجه جهان نیست.

او همچنان در این دیدار بر گسترش روابط میان افغانستان و ازبیکستان تاکید کرده است.

به باور این دیپلومات ازبیکستانی، امنیت سرتاسری در افغانستان سبب شده تا روابط اقتصادی، ترانزیتی و تجارتی میان دو کشور تقویت شود.

عصمت‌الله ایرگاشف با بیان که نباید در امور داخلی افغانستان دخالت صورت گیرد از کشورهای جهان خواسته تا روی پیشرفت این کشور سرمایه‌گذاری کنند.

## ۲۵ هزار تن هراتی در آخرین شام دهه مغفرت کنارهم افطار کردند

بربنیاد ابتکار تاجران و اشخاص خییر در ولایت هرات، ۲۵ هزار باشنده این ولایت در یک اقدام باهم کنارهم بیستمین روزه ماه مبارک رمضان را افطار کردند. مولوی احمدالله متقی، رئیس اطلاعات و فرهنگ ولایت هرات با استقبال از این برنامه و قدردانی از مبتکرین آن، چنین اقدامات را افزایش دهنده وحدت و همدلی در میان مردم دانسته است. مبتکرین این افطار جمعی نیز با قدردانی از نیروهای امنیتی کشور، امنیت سرتاسری را زمینه‌ساز برگزاری چنین برنامه‌های خوانده‌اند.

هدف از این برنامه افطاری جمعی، استقبال از شب قدر که بربنیاد روایت‌های شرعی در شب‌های دهه آخر ماه مبارک رمضان اتفاق خواهد افتاد، گفته شده است.

در این برنامه افطاری خیابانی برای صدها تن از افراد فقیر و نادار نیز افطاری توزیع شده است.



## د ناوړه دودونو د مخنیوي په اړه د امیرالمؤمنین فرمان؛ واده کې دې له بې ځایه لګښتونو او دودونو ډډه وشي

نذیر منیب

د اسلامي شریعت له مخې، واده یو مقدس تړون دی چې باید د شریعت اصولو او لارښوونو پر اساس ترسره شي. په ځینو سیمو کې د واده پر مهال داسې رواجونه او دودونه رامنځته شوي چې د شریعت له اصولو سره په ټکر کې دي او په ټولنه کې یې د لوړو لګښتونو له امله ستونزې رامنځ ته کړې دي.

په همدې اړه د امیر المؤمنین شیخ هبته الله اخوند زاده په تازه فرمان کې راغلي، چې مهر د ښځې حق دی او د دې اخیستل واجب دي، «خو په اسلام کې ډېر لوړ مهر غوښتل او د دې په بدل کې پیسې اخیستل منع دي» او په خبره یې، خلک دې مناسب مهر وټاکي څو د نارینه له وسې بهر نه وي.

امیر المؤمنین خبر ورکړی، چې د عالمانو غونډه د لوړ مهر د مخنیوي لپاره د یوې ګډې هوکړې رامنځته کولو په هڅه کې ده او زیاته کړې یې ده: «مهر د ښځې حق دی او د هغې پرته بل څوک حق نه لري چې هغه مصرف کړي یا ترې ګټه واخلي، حتی که پلار، ورور، یا بل خپلوان وي».

همدا شان د مهر په اړه ویل شوي: «د مهر اندازه لږ تر لږه لس درهمه ده او که له دې کمه وي، نکاح نه شي کېدی، مګرکه د مهر اندازه نه وي ټاکل شوې او ښځه راضي وي، نو نکاح صحیح ده».

په دغه فرمان کې د مېرمن کورنۍ له دې منع کړې شوې، چې د ولور په نوم د زلمي له کورنۍ پیسې وغواړي.

دغه راز فرمان نجلۍ د خپل ژوند شریک په ټاکلو کې پوره حق ورکړی او ازاده یې ګڼلې.

فرمان کې لیکل شوي: «یوه بالغه نجلۍ پرته له خپلې رضایت څخه، په زور او اجبار سره واده کې نه شي شاملېدی. که چېرته بالغه نجلۍ د زور او جبر له لارې واده شي، نو کولی شي محکمو او اړوندو ادارو ته شکایت وکړي او خپله عریضه وړاندې کړي».

په فرمان کې ټینګار شوی، چې په دې اړه دې د امیرالمؤمنین فرمان عملي شي.

دغه راز په فرمان کې ویل شوي: «د شریعت له مخې په واده کې ګران بیه ډالۍ منع دي. د واده پر مهال باید د دواړو کورنیو تر منځ د مقابلوي تحفو راوړل یا د غیر ضروري شیانو غوښتنه ونه شي».

دغه راز په واده کې د مېلمنو لپاره د مناسبو خوړو تیارولو امر شوی او ویل شوي، چې له بې ځایه اسراف او د خوراکي توکو له ضایع کولو دې ځان وساتل شي.

د غیر شرعي دودونو د پاللو په اړه امیرالمؤمنین ویلي، چې اسلام د واده لپاره هغه شیان چې خلک پوروړي کړي، نه خوښوي.

په هوټلونو کې د ودونه بې ځایه مصرف او اسراف ګڼل شوی او ویل شوي، چې «مسلمانان باید واده د سنت طریقې سره سم وکړي او له بې ځایه مصارفو ډډه وکړي».

د یادولو وړ ده، چې له کوژدې وروسته د ښځې ازادۍ او په نورو نومونو دودونه پالل د اسلام سره په ټکر کې بلل کېږي او خلک اړ دي چې ځان ترې وساتي.

په دغه فرمان کې د ناسمو رواجونو تر څنګ په دین کې د بدعتونو څخه د مخنیوي ټینګار هم شوی.

د فرمان له مخې، اسلام د هغه عمل څخه ډډه کوي، چې د سنت خلاف وي او په شریعت کې یې هیڅ اصل نه وي، «د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لارښوونې پر بنسټ، د بدعتونو او ناسمو طریقو څخه باید ډډه وشي او د ژوند ټولې چارې باید د شریعت پر بنسټ وي».

د دې تر څنګ د مړو په مراسمو کې هم د هغو رواجونو غندنه شوې چې په شریعت کې نه دي راغلي.

ویل شوي، چې د مړو لپاره ځانګړې تیارۍ او په مشخصو ورځو کې د کورنۍ له لوري خلکو ته ډوډۍ چمتو کول او مراسم ترسره کول، چې د شریعت اصولو خلاف وي، ناروا عمل دی.

امیرالمؤمنین په خپل بیان کې خلکو ته د شرعي اصولو د پیروني او له ناروا دودونو څخه د ځان ساتلو سپارښتنه کړې ده.

هغه مسلمانانو ته لارښوونه کړې چې د خپلو نکاحونو او کورنیو چارو د سرته رسولو پر مهال د اسلام سپېڅلي اصول رعایت کړي او له بدعتونو او ناوړه رواجونو څخه ډډه وکړي.

---

### شنبه

کابل (مرکز)

نیمه ابری

صبح 9°F/19°C
بعد از ظهر 8°F/18°C

حمل ۰۲ ۱٤۰٤
1446/10/22
03/22/2025

| روز | وضعیت | دما |
|---|---|---|
| یکشنبه | آفتابی | 19°C |
| دوشنبه | ابری | 20°C |
| سه‌شنبه | نیمه بارانی | 18°C |
| چهارشنبه | برفی | 13°C |
| پنجشنبه | بارانی | 13°C |
| جمعه | آفتابی | 14°C |

### آمار و ارقام روزانه

- اختراع چاپ توسط گوتنبرگ در سال ۱۴۴۰ میلادی صورت گرفت
- شایع ترین مریضی پوسیدگی دندان است.
- ۱۱ ٪ از مردم جهان دست چپ هستند.
- مغز ۲۵ ٪ از کل اکسیجن تنفس شده را مصرف می کند
- اولین بطری پلاستیکی در سال ۱۹۷۰ تولید شد.
- نخستین ریل با سرعت ۸ کیلو متر در ساعت حرکت می کرد
- نهنگ ها نمی توانند به عقب حرکت کنند.
- بیش از ۷۰۰۰ زبان در دنیا وجود دارد.
- حدود ۳ درصد از جمعیت دنیا مهاجر هستند.
- پای انسان ۲۶ استخوان دارد.
- اقیانوس آرام بزرگترین اقیانوس جهان است.
- هر فرد بطور متوسط ده کیلو چاکلیت در سال می خورد
- فیل‌ها در هر ۲۴ ساعت، ۴ تا ۵ ساعت می‌خوابند

### کودک

**داستان کوتاه:** روزی از روز ها زاغی بسیار تشنه بود، نظرش به یک کوزه گلی افتاد. وقتی نزدیک آن شد، دید که در کوزه، آب موجود است؛ ولی نولش به آن نمی رسد. زاغ تشنه هر قدر کوشش کرد نتوانست از آن آب بنوشد؛ ناگهان چاره یی به فکرش رسید. سنگ های کوچک را با نول خود گرفته، داخل کوزه انداخت. دیری نگذشت که آب کوزه بالا آمد و زاغ توانست از آن بنوشد

**چیستان:** آن چیست که هم وسیله آرایش است و هم عضوی از بدن؟
شانه

**فکاهی:** روزی شتر و روباه همراه بودند. در بین راه کنار دریا رسیدند. روباه به شتر گفت: داخل شو و ببین که آب تا چه اندازه است. شتر درآمد و گفت: بیا از شکم بالا نیست. روباه گفت: بلی؛ اما شکم تا شکم فرق دارد

**ببین و بساز:**




### شریعت

- **روزه:** در ماه رمضان واجب است و هدف آن تقویت تقوا و پرهیز از گناه است
- **دعا و اذکار:** دعا کردن و ذکر گفتن از مهم‌ترین عبادات در اسلام است
- **حلال و حرام:** خوردن حلال برای مسلمانان واجب است و باید از هر چیزی که حرام است پرهیز کرد
- **صدقه:** صدقه دادن به نیازمندان یکی از کارهای پسندیده است که موجب افزایش رزق و برکت می شود
- **زکات فطر:** در ماه رمضان بر مسلمانانی که شرایط دارند، واجب است
- **امانت داری:** کسی که امانت دار نیست، ایمان ندارد.( حدیث نبی کریم ص)
- **خدمت به خانواده:** خدمت کردن به خانواده، کفّاره گناهان بزرگ است و خشم پروردگار را فرو می نشاند.(حدیث نبی کریم ص)
- **تدبر در قرآن:** مسلمان باید در آیات قرآن تفکر و تدبر کند تا در زندگی خود راهنمایی بیابد

### پروازهای امروز

| مسیر | زمان | شرکت |
|---|---|---|
| کابل - دبی | ۹:۲۵ ق ظ | فلای دبی |
| کابل - تهران | ۹:۳۰ ق ظ | کام ایر |
| کابل - تاشکند | ۹:۳۰ ق ظ | کام ایر |
| کابل - دبی | ٤:۰۰ ق ظ | ترکیش |
| کابل - دبی | ۵:۱۰ ب ظ | کام ایر |
| کابل - قندهار | ۱۰:۰۰ ق ظ | آریانا |
| کابل - شارجه | ۱۱:۵۰ ق ظ | ایر عربیا |
| کابل - هرات | ۱۲:۰۰ ق ظ | آریانا |
| کابل - مزار | ۲:۰۰ ب ظ | آریانا |
| کابل - جده | ۱۰:۱۵ ب ظ | آریانا |

### جواهرات

| نوع | نام | قیمت |
|---|---|---|
| طلای عیار ۲۲ | قطری | ٦۹۳۰ ف |
| طلای عیار ۲۱ | الجزایر | ٦٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۲۱ | مصری | ٦٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۸ | الجزایر | ۵٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۸ | کویتی | ۵٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۸ | مصری | ۵٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۸ | سنگاپوری | ۵٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۸ | عربی | ۵٦۰۰ ف |
| طلای عیار ۱۴ | ایرانی | ۴۴۵۰ ف |
| طلای عیار ۱۴ | روسی | ۴۵۰۰ ف |

### نرخ اسعار

| ارز | نرخ |
|---|---|
| دالر خرید | ۷۰,۵ ف |
| دالر فروش | ۷۰,۷ ف |
| یورو خرید | ۷۵,۳ ف |
| یورو فروش | ۷۵,۹ ف |
| پوند خرید | ۸۹,۸ ف |
| پوند فروش | ۹۰,٦ ف |
| کلدار خرید | ۲۵۱ ف |
| کلدار فروش | ۲۵۲ ف |
| تومان خرید | ۱,۲ ف |
| تومان فروش | ۱,۳ ف |
| درهم خرید | ۱۹,۱ ف |
| درهم فروش | ۱۹,۲ ف |
| ریال خرید | ۱۸,۵ ف |
| ریال فروش | ۱۸,٦ ف |

### اخبار کوتاه

- سال تعلیمی ۱۴۰۴ در کشور آغاز شد.
- امارت اسلامی افغانستان یک شهروند امریکا را از بند آزاد کرد
- وزیر خارجه کشور با نماینده ویژه امریکا دیدار کرد
- امارت اسلامی: نسل کشی در غزه متوقف شود.
- بر اساس موافقت نامه های دو جانبه میان
- افغانستان و ایران ۴۸۴ زندانی افغان به کشور انتقال داده شدند
- قیمت مواد نفتی در شهر کابل کاهش یافته است.
- تیم ملی فوتبال ساحلی کشور چهار دیدار دوستانه در تایلند برگزار می کند
- وزیر خارجه هند: برای کمک به افغانستان باید با امارت اسلامی تعامل داشته باشیم
- دیدبان حقوق بشر: پاکستان از برگشت اجباری مهاجران افغان دست بردارد
- برای ۵۰۰ معتاد در حال تداوی در ولایت هرات فرصت های آموزش فن و حرفه فراهم شده است
- معین فرهنگ و هنر وزارت اطلاعات و فرهنگ کشور با مسئول اجرایوی موزیم کشور قطر دیدار کرد
- سخنگوی وزارت مالیه: معاشات کارمندان دولتی و مصارف اضافی به زودی اجرا می شود
- ۸۳۹ تن منسوبین جوان از مرکز آموزشی قول اردوی ۲۰۷ فارغ شدند

### اطلاعات عمومی

- گل آفتاب پرست توانایی کمک به پاکی کردن رادیو اکتیف از خاک را دارد
- تنها ۲٪ از جمعیت کل جهان چشم های سبز دارند.
- حدود ۲۵٪ از کل خون بدن انسان از قلب به کلیه ها می رود
- سیاره مشتری، ۶۹ ماه دارد.
- یک طفل از هر ۲۰۰۰ طفل متولد شده دندان دارد.
- به هفت تا هشت درخت برای تامین اکسیجن یک نفر در سال نیاز است
- کوچکترین پشک وحشی جهان پشک پا سیاه است که ۲۰ سانتی متر طول دارد
- با هر قدم در پیاده روی در مجموع ۲۰۰ عضله استفاده می شود
- لئوناردو داوینچی مخترع قیچی میباشد.
- ۵۰ ٪جمعیت جهان هیچگاه در طول حیات خود از تلفن استفاده نکرده اند
- چشم های زیبای شترمرغ از مغزش بزرگتر است.
- ۹۸ ٪ وزن آب از اکسیجن تشکیل یافته است.

### نرخ بازار

| جنس | واحد | قیمت |
|---|---|---|
| آرد | بوری | ۱۳۳۰ ف |
| برنج | بوری | ۲٦۵۰ ف |
| روغن | پیپ | ۱۷۰۰ ف |
| گاز | کیلو | ۵۰ ف |
| تیل پطرول | لیتر | ۵۴ ف |
| تیل دیزل | لیتر | ۵۷ ف |
| سنگ ذغال | خروار | ۷۰۰۰ ف |
| چوب | سیر | ۱۳۰ ف |

### اوقات شرعی کابل

| وقت | ساعت |
|---|---|
| صبح | ۰۵:۰۰ |
| ظهر | ۱۲:۳۰ |
| عصر | ۰٤:۰۱ |
| عشاء | ۰۵:۴۵ |
| مغرب | ۰۷:۰۸ |

### شماره‌های ضروری کابل

| نهاد | شماره |
|---|---|
| پولیس | ۱۰۰ |
| استخبارات | ۱۰۰۱ |
| اطفاییه | ۱۰۱ |
| آمبولانس | ۱۰۲ |
| شاروالی | ۰۷۹۲۷۴۳٦۸۵ |

### شماره‌های خدماتی کابل

| نهاد | شماره |
|---|---|
| افغان پوست | ۱۹۹ |
| افغان اعلانات | ۰۷٦٦۷۸۸۴۴۷ |

شماره توزیع و شکایات اخبار:
۰۷٦٦۰٤٤۹٦٦ / ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹